ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز | دوشنبه د شعبان المعظم۲۵مه ۱۴۴٦ق کال، دکب ۶مه ۱۴۰۳ ل کال، دفبروري۲۴مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي گڼه۵۵۲مه، پرله‌پسې گڼه ۶۴۲مه، اتمه دوره

د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال:

## افغانستان د حکومت او ملت ترمنځ د همکارۍ په پایله کې پر پښو درېدلی شي

د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال ملاعبدالغني برادر اخوند ازبیکستان ته د خپل سفر پر مهال پرون په تاشکند کې د افغانستان سفارت له نوې ودانۍ څخه لیدنه وکړه. د دغې لیدنې پرمهال په تاشکند کې د اسلامي امارت سفیر شیخ عبدالغفار بحر د نوې ودانۍ په اړه د ریاست الوزراء اقتصادي مرستیال ته معلومات ورکړل. ملا عبدالغني برادر اخوند په تاشکند کې د افغانستان سفارت له ودانۍ څخه د لیدنې پر مهال د سفارت مسئولینو ته وویل: په افغانستان کې یو داسې نظام واک ته رسېدلی، چې هغه په رښتیني مانا د هېوادوالو خدمت کوي او په دغې برخه کې خپلو مسئولیتونو ته په ښه ډول متوجه دی. نوموړي زیاته کړه:...۳مخ

## د ریاست‌الوزراء د اقتصادي مرستیال په مشرۍ پلاوی له ازبیکستان څخه ډک لاس هیواد ته را ستون شو



د ریاست‌الوزراء د اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر اخوند په مشرۍ د اسلامي امارت لوړپوړی پلاوی، چې په ترکیب کې یې د کابینې یوشمېر غړي او د سکتوري ادارو استازي شامل دي، ازبیکستان ته له دوه ورځني سفر وروسته پرون ماسپښین مهال کابل ته راستون شو. د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال د کابل نړیوال هوایي ډگر کې له رسنیو سره د خبرو پر مهال یاد سفر له لاسته راوړنو ډک وباله او ویې ویل، چې د خپل سفر پرمهال یې د ازبیکستان له لومړي وزیر، د لومړي وزیر له مرستیال او د یو شمېر ادارو له مسئولینو سره لیدنې وکړې. په دې لیدنو کې دوی ښه پرمختگونه او بحثونه درلودل چې مهم یې د کرنې، برښنا، ترانسپورټ، سوداگرۍ او د وسپنې پټلۍ او نورو برخو کې دي...۳مخ

## لغمان کې سلگونو کورنیو ته د روغتیایي خدمتونو زمینه برابره شوه

د لغمان په الیشنگ ولسوالۍ کې د قندلي روغتیایي مرکز، چې څه موده وړاندې د ځینو ستونزو له امله تړل شوي و، بېرته پرانیستل شو. د لغمان د عامې روغتیا ریاست مسئولین وایي، چې دا مرکز د الیشنگ...۳مخ



## سمنگانو کې سږکال ۸۰۰ زره نیالگي کېنول کېږي



د سمنگانو په ایبکو ښار کې د نیالگیو کېنولو ملي کمپاین د والي ملا محمد شعیب رسالت په شتون کې پیل شو، چې په ترڅ کې به یې ۸۰۰ زره نیالگي کېنول شي. د نیالگیو کېنولو په جوړو شویو مراسمو کې د سمنگانو والي ملا محمد شعیب رسالت له ټولو هېوادوالو...۳مخ

## ناروې له افغانستان سره په بېلابېلو برخو کې خپلو همکاریو ته دوام ورکوي

چین کې د افغانستان د اسلامي امارت لوی سفیر مولوي بلال کریمي د افغانستان لپاره د ناروې هېواد له ځانگړي استازي پل کلومن او د چین لپاره د یاد هېواد له سفیر ویبجورن ډایسویک سره په بیجینگ کې لیدنه کړې. د اسلامي امارت لوي سفیر مولوي بلال کریمي هغوی ته ښه راغلاست ویلي او د افغانستان په اړه یې د ناروې رول مثبت یاد کړی. دغه راز مولوي بلال کریمي له ناروې هېواد سره په ډیپلوماتیکه ساحه کې تازه پرمختگ ستایلي او دا یې د دواړو هېوادونو ترمنځ د مثبتو اړیکو او د متقابل تعامل د پیاوړتیا او پراختیا لپاره مهم گام بللی. د افغانستان لپاره د ناروې



ځانگړي استازي پل کلومن ویلي: موږ تل هڅه کړې، چې افغانستان له نړیوالې ټولنې سره نږدې شي او هغه ننگونې او ستونزې حل کړو، چې په دې لاره کې خنډ گرځېدلي دي. کلومن زیاته...۳مخ

## په سلواغې میاشت کې له ۱۴۰۰۰ډېر کډوال هیواد ته راستانه شوي

له گاونډیو هېوادونو د افغان کډوالو د راالېږلو په دوام، د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت مسئولین وایي، چې په تېره یوه میاشت کې له ۱۴ زرو ډېر افغان کډوال هېواد ته راستانه شوي دي. د یاد وزارت ویاند، عبدالمطلب حقاني ویلي، چې دا کډوال له ایران، پاکستان او ترکیې څخه راستانه شوي دي. د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت دا هم ویلي، چې په راستنو شویو کډوالو کې څه باندې ۱۰ زره۶۳۸ له ایران، ۳ زره ۳۱۱ له پاکستان...۳مخ

## بدخشان کې یوه دیني مدرسه جوړه شوه

د بدخشان د وردوج ولسوالۍ په استرب کلي کې د ملي دفاع وزارت د لوی درستیز قاري فصیح الدین فطرت او یو شمېر ملي سوداگرو په مالي ملاتړ د څه باندې ۲۵ میلیونه افغانیو په لگښت یوه دیني مدرسه جوړه او گټې اخیستنې ته وسپارل شوه. د یادې دیني مدرسې یو مسئول مولوي عبدالوهاب وویل، چې دا مدرسه په ۱۰ جریبه ځمکه کې جوړه شوې او په یو وخت کې د ۸۰۰ طالب‌العلمانو د ځایېدو ظرفیت لري چې اوس مهال پکې ۱۵۰ زده‌کوونکي په زده‌کړو بوخت دي. مولوي عبدالوهاب زیاته کړه، چې د دې مدرسې بنسټ لومړي ځل په ۱۲۸۰ کال کې د بنسټگر مولانا محمد امین جان شهید له لوري ایښودل شوی و، خو اوس په عصري، پاخه او اساسي ډول جوړه شوې ده. د سیمې اوسېدونکي د یادې مدرسې له جوړېدو خوښ دي او له مسئولینو د ورته ټولگټو پروژو د پلي کولو غوښتنه کوي.



## د افغانستان بانک له نړۍ سره د بانکي سکتور په برخه کې رغنده اړیکو ته ژمن دی

ازبیکستان ته د افغانستان د اسلامي امارت د لوړ پوړي پلاوي د سفر په ترڅ کې د افغانستان بانک رئیس نور احمد اغا د ازبیکستان




د مرکزي بانک له رئیس تیمور اشمتوف سره ځانگړې لیدنه وکړه. د افغانستان بانک وایي: په دې لیدنه کې دواړو لوریو د دوه اړخیزو همکاریو د پراختیا، د بانکي لېږدونو په برخه کې د اسانتیاوو رامنځته کولو، د ظرفیت لوړونې، په سوداگریزو راکړو ورکړو کې د دواړو هېوادونو د ملي پولي واحدونو پر کارونې او د ادائیزو سیستمونو د نښلونې او پراختیا په اړه مفصل بحثونه وکړل. په یاده لیدنه کې د افغانستان بانک رئیس نور احمد اغا د هېوادونو ترمنځ د بانکي اړیکو پراختیا گټوره یاده کړه او ویې ویل: د ازبیکستان هېواد سره د بانکوالۍ برخې پراختیا کولی شي د سوداگریزو اړیکو د لا غوړېدو سبب شي. نور احمد اغا زیاته کړه: د افغانستان بانک ژمن دی، چې د نړۍ له ټولو هېوادونو سره د بانکي...۳مخ

## هیواد کې د نیالگیو کېنولو ملي کمپاین پیل شو

د کرنې، اوبولگولو او مالدارۍ وزارت مسئولینو د ۱۴۰۴ لمریز کال په را نږدې کېدو سره، د کابل بادام‌باغ کې د (( نن نیالگي د راتلونکې هوساینې )) تر نامه لاندې د نیالگیو کېنولو ملي کمپاین پیل کړ. مسئولین وایي، د دې کمپاین پرمهال به د هېواد په کچه ۱۶ میلیونه نیالگي کېنول شي. د کرنې، اوبو لگولو او مالدارۍ وزارت د طبیعي منابعو عمومي رئیس عبدالاحد خلیل وویل: (( موږ به له خپلو قوریو څخه ۱۶ میلیونه نیالگي هېوادوالو ته ووېشو.)) د کرنې، اوبو لگولو او مالدارۍ وزارت مرستیال صدراعظم عثماني هم د حج او اوقافو وزارت...۳مخ



## بېگم او جوانان راډیوگانو بېرته خپل فعالیت پیل کړ



د اطلاعاتو او فرهنگ وزارت وایي: په کابل کې بېگم او ځوانانو راډیوگانو ته یې، چې په کابل او نږدې ولایتونو کې یې په FM څپو نشرات درلودل، له نشراتي معینیت سره له ژمنې وروسته، د اسلامي امارت او د ژورنالیزم د اصولو په رڼا کې بیا د فعالیت اجازه ورکړه. یاد وزارت وایي: د دغو دوو راډیوگانو فعالیت څه موده وړاندې د کار له جواز څخه د ناوړه گټې اخیستنې او له بهرنیو تحریم شویو رسنیو سره د همکارۍ له امله ځنډول شوی و. د اطلاعاتو او فرهنگ وزارت د رسنیو او خبریالانو ملاتړې اداره ده، نو په هېواد کې د ټولیزو رسنیو پر نشراتو د څار ترڅنگ...۳مخ

## کابل کې د لسگونو خالي بستونو لپاره الکترونیکي ازموینه واخیستل شوه

د عامې روغتیا وزارت له لوري د کابل ښار د اړوندو روغتونونو د ۱۲۹ خالي بستونو لپاره پرون د اداري اصلاحاتو او ملکي خدماتو ادارې په انگړ کې الکترونیکي ازموینه واخیستله. په نوموړې غونډه کې د عامې روغتیا وزرات ښاغلي حقاني وویل، چې نوموړې ازموینې ته د ۱۲۹ متخصصو او مسلکي بستونو لپاره ۲۴۳ نوماندانو ثبت نام کړی دی چې ۲۰۶ تنه یې نارینه او ۳۷ یې ښځینه دي. هغه وایي، چې څه وخت وړاندې هم د ۴۲۴ خالي بستونو



د عرضه خدماتو مرستیال مولوي عبدالوالي حقاني وویل، چې د ازموینې گډونوالو ته د شفافیت په اړه بشپړ ډاډ ورکوم او ټولو گډونوالو ته یې د بریالیتوب او د خدمت کولو هیله څرگنده کړه. لپاره ازموینه اخیستل شوې وه، چې دا مهال د تقرر چارې یې روانې دي. ده زیاته کړه، چې د عامې روغتیا وزارت ژمنتیا لري چې د هېواد په ټولو روغتیایي مراکزو کې...۳مخ

هیواد

دوشنبه د شعبان المعظم ۲۵مه ۱۴۴۶ ق کال | د کب ۶ مه ۱۴۰۳ ل کال | د فبروري ۲۴مه ۲۰۲۵ م کال | خصوصي ګڼه ۵۵۲مه | پرله‌پسې ګڼه ۶۴۲مه، اتمه دوره

# د کونړ پر سیند د برښنا بند جوړول د هیواد برښنایي ستونزې هوارولی شي

سالمزی

د کونړ سیند چې د یولې درې له بروغیل تنګی څخه سرچینه اخلي، له بېلابېلو سیمو څخه د تېرېدو پر مهال په بیلابیلو نومونو یاد شوی دی. د بیلګې په توګه د کاشغر په سیمه کې د کاشغر یا قاشقار په نوم یادیږي او کله چې دوکلام یا ارنوۍ سیمې ته داخلیږي دارندو په نامه او کله چې د بریکوټ له سیمې څخه د تیریدو پر مهال د اسمار او دانګام درې خوړونه او سیندګوټې سره یوځای شي چې د شیګل خوړ یا سیند هم ورسره ملتیا کوي او د کونړ ولایت مرکز اسعدآباد ته رسیږي، هلته د لوی سیند په نوم یادیږي، خو کله چې د کونړ ولایت په مرکز اسعدآباد کې د پیچ درې یا لنډۍ سیند سره یو ځای شي، نو بیا د کونړ سیند په نـوم یادیږي او په اوېـستایې ژبه کې یې دراسا په نوم شهرت درلـود. په ځـای د دې چې موږ له خپلو سرشارو سیندونو ګټه پورتـه کړو او د هیـواد په کچه برښنایې ستونزه له منځه یوسو، برعکس زمـوږ کرنیزې ځمکې تخریبوي چې زیات شمیر ځوانان اوکوچنیان موهم د دغه طغیاني او سرشار سیند طوفاني څپو پخپله غیږه اخیستي او یا یې هم اخلي او د ګټې پرځای ضرر رسـوي. د مرحوم محمد داود خان دواکمنۍ پر مهال یـې په اړه یـوه سروې هم تر سره شـوې وه او د اسمار ولسوالۍ اړوند د سور طاق سیمه یې د برښـنا بنـد د جوړولو لپاره په نښه کړې وه، خوله بده مرغه چې په ټپل شویو جنګونو کې د هیواد د پرمختګ او ترقۍ اساسي بنسټونه راونړیدل او د محمد داود خان پنځه کلن پرمختیایي پلانونه همداسې د شګو په سرلیکې پاتې شول ،خو اوس چې لله الحمد له هیواد څخه د اشغال لمن ټوله شوې او د اسلامي نظام زرینې وړانګې د هیواد په کچه غوړېدلي، ډاډمن امنیـت تامین شـوی او د هیواد جغرافیایې حـدود کنټرول او تر یوه واحد قیادت لاندې د اسلامي نظام په سـیوري کـې چې زموږ د مؤمن او میړنـی ملت ارمان او هیله وه او دهمدغه اسلامي نظام د حاکمیت لپاره یې قربانۍ ورکړې وي چې د میلیونونو شـهیدانو د شـهادت په پایله کـې د الله جل جلاله په خاصه لورینه د اسلامي نظام څښتنان او د اسلامي عدالت په پام کـې نیولـو سره ورځنیو مسایلو او ستونزوته د هواري په موخه رسیدنه کیږي.

مـوږ پرخپلو چارواکـو یوځل بیاغږ کوو او د کونړ پر سـیند د برښنا بند د جوړولو غوښتنه کوو چې د هیـواد په کچه برښـنایې سـتونزه لـه منځـه وړي او په اقتصـادي پیاوړتیا کې خورا مهم رول لوبوي او زمـوږ په کورنیو چـارو کـې د بهرنیـو اوځینو ګاونډیو هیوادونو لاسوهنو ته هم د پای ټکی ږدي، که پر دغه سیند د برښـنا بنـد د جوړولو چاروته عملي بڼه ورکړل شي، پر مغرضو هیوادونـو به هم چـې زموږ په نابودۍ کې د خپلې بقا په لټه کې دي یخې اوبه تویې شي، ځکه چې دهمدغه سیند د مهارولو او پرې د برښنا بند د جوړولو په سر یې دا څلور لسیزې وشوې چې زموږ په هیواد کې د جنګونو لړۍ جارۍ ساتلې او لاهم زمـوږ په سر له غربي استعمارچیانو پروژې اخلي او نه غواړي چې دلته یو پیاوړي او مسـتحکم نظام او حکومت رامنځته شي.

زه لـه ټولـو اصیلـو افغانانـو، مجاهدینو اوخپلو چارواکو څخه هیله کوم چې زموږ داغږ بدرګه کړي او پردغه سیند د برښنا بند د جوړولو چارې پیل کړي.

# د هیواد د اقتصادي ودې لپاره د ستراتېژیکو همکاریو پراختیا ته اړتیا ده

افغانسـتان، چې د سـیمې یو مهم اقتصـادي او ترانزیټـي مرکـز ګڼل کېـږي، د خپلـو ګاونډیو، پـه ځانګړې ډول د منځني آسـیا هېوادونو سره د تجارتي همکاریو د پراخولو له لارې کولی شي خپل اقتصـادي ثبات پیـاوړی کړي. د افغانسـتان حکومت په دې برخه کې مهـم ګامونه پورته کړي، خو لا هم اړتیا شـته چې دغه اړیکې نورې هم پراخې شي، سوداګریزې راکړې ورکړې زیاتې شي او د ویزو په برخه کې ځانګړې آسـانتیاوې رامنځته شي.

د منځنـي آسـیا هېوادونـه، لکه ازبیکسـتان، ترکمنسـتان، تاجکسـتان، قزاقسـتان او قرغزسـتان، د افغانسـتان لپاره د سوداګرۍ، انرژۍ او ترانزیټ په برخو کې ډېر مهم شریکان دي. د افغانستان اقتصادي ودې ته په کتو، دا اړینه ده ،چې له دغو هېوادونو سره د سـوداګریزو تړونونـو د پراخولو لپاره مشـخص اقدامات وشي.

کرنـه، کانونـه، ترانسـپورت او انـرژي هغه ځانګـې دي، چې د دواړو لوریـو ترمنـځ د اقتصادي همکاریـو د پراخېدو لپاره سـتر فرصتونه وړاندې کوي. د منځني آسیا هېوادونه د افغانستان د طبیعي زېرمـو، زراعـت او ترانزیټـي لارو څخه ګټه اخیسـتلای شي او افغانستان کولی شي د دې هېوادونو لـه پرمختللي صنعتي سـکتور او تخنیکي ظرفیتونو څخه زده کړه او استفاده وکړي.

د سـوداګرو، پانګوالـو او متخصصینو لپاره د ویزو آسانتیاوې د اقتصادي ودې یو مهم عنصر دی. که افغان حکومت او د منځني آسیا هېوادونه په ګډه د سوداګریزو او کاري ویزو شرایط اسانه کړي، نو دا به نه یـوازې د اقتصادي راکړې ورکړې پراخوالي تـه لاره هواره کړي، بلکې د سیمې د سوداګرو، صنعتکارانو او متخصصینو ترمنځ د متقابلو همکاریو یو نوی دور به پیل کړي.

داسـې هوکـړې، چـې د ویزو د ورکـړې پروسـه سـاده کړي، او ږدمهالـې سـوداګریزې ویزې رامنځتـه کـړي، او د خصوصي سـکتور فعالیت ته د لا پراخېدو زمینـه برابـره کـړي، کولی شي افغانسـتان تـه د سـیمه‌ییزې سـوداګرۍ د یوه قـوي لوبغاړي حیثیت ورکړي.

افغانستان د سوداګرۍ او ترانزیټ لپاره یـو سـتراتیژیک موقعیت لـري، خـو لا هـم د ترانزیټـي همکاریو پراخولو تـه اړتیا ده. د لاجوردو دهلیز، د ازبیکسـتان او ترکمنستان له لارې د سوداګریزو لارو پراخول او له چین، روسـیې او جنـوبي آسـیا سره د ترانزیټي همکاریو زیاتوالي د افغان اقتصاد لپاره حیاتي ارزښت لري.

د سـړکونو، رېل پټلیو او هوایي دهلیزونـو پراخول نه یـوازې د افغانسـتان د صادراتو او وارداتو کچه لوړوي، بلکې د منځني آسیا هېوادونو ته هم د نړیوالو بازارونو د لاسرسي لپاره اسانتیاوې برابروي.

د دې لپاره افغان حکومت باید له دغـو هېوادونـو سره د ترانزیټي همکاریـو د پراخولـو لپاره نوي تړونونـه او د ګمرکـي تعرفـو د کمولو لپاره اقدامات وکړي.

د منځنۍ آسـیا لـه هېوادونو سره اقتصادي او تجارتي اړیکې پراخول د افغانسـتان اقتصـادي ثبات او پرمختګ ته حیاتي ارزښت لري. سره له دې چـې افغان حکومت په دې برخه کې یو شـمېر مثبت اقدامات کړي، خـو اوس وخت رارسېدلی چې دا هڅې لا ګړندۍ شي.

کـه دا اقدامات عمـلي شي، نو نه یوازې افغانسـتان ته به اقتصادي ګټې ورسوي، بلکې د ټولې سیمې د اقتصادي ثبـات لپاره به هم نوې دروازې پرانیزي او افغانستان به د یوه قوي اقتصادي شریک په توګه خپل ځای تثبیت کړي.

# سرلیکنه



## د چاپېریال ساتنه؛ زموږ ګډ مسئولیت

چاپېریـال زمـوږ د ژوند اساسـي برخه ده، چې زمـوږ روغتیا، اقتصـاد او ټولنیـز پرمختـګ ورپـورې تړلي دي، خـو له بده مرغـه، د بشـري فعالیتونو لـه امله زموږ طبیعت له بې سـارو ګواښـونو سـره مخ دی. د ځنګلونو پرې کول، د هوا ککړتیا، د اوبو کمښـت او د اقلیمي بدلون اغېزې هغه مسـایل دي، چې نه یوازې اوسـنی نسل، بلکې راتلونکي نسـلونه به هم زیانمن کړي.

چاپېریالـي ککړتیـا د هوا، اوبـو او خاورې د خرابوالي سـبب ګرځي. فابریکې، موټرونه او نامسـئولانه فعالیتونه هغه عوامل دي، چـې د چاپېریـال ککړتیـا تـه لاره هـواروي. دا ککړتیا د تنفسي ناروغیو، سرطان او نورو جدي روغتیایي ستونزو لامل ګرځي. موږ، انسـانان، د دې خرابۍ اصلي عاملین یو، نو همدا موږ ته لازمه ده چې د دې حالت د سـمون لپاره اقدام وکړو.

د چاپېریال د سـاتنې لپاره څو اساسي ګامونه اخیستل کېدای شي:

د شـنې فضـا پراخول: هـر وګړی بایـد هڅه وکړي چې شـنه بوټي او ونې وکري. ونې نه یوازې اکسـیجن تولیدوي، بلکې د هـوا د ککړتیا د کمښـت، د اقلیم د متوازن سـاتلو او د زلزلې، سـېلابونو او تودوخې د کنټرول برخو کې مهم رول لري.

د ککړتیـا مخنیـوی: د فابریکو د لوګیو کنټـرول، له تېلو څخه کمه اسـتفاده او د اوبو د بې ځایه مصرف مخنیوی باید زموږ د ژوند برخه وګرځي.

د بیا اسـتعمال فرهنګ: هغه مواد چې بیا استعمالېدای شي، باید ضایع نه شـي. د پلاسـتیک کمول، د کاغذ بیا اسـتعمال او د کثافاتـو صحیـح مدیریـت د چاپېریال سـاتنې لپاره مهم اقدامات دي.

د عامـه پوهـاوي کچـه لـوړول: خلـک بایـد پوه شـي چې د چاپېریـال سـاتنه یـوازې د دولـت مسـئولیت نـه دی، بلکې ټول وګړي بایـد په دې برخه کې خپله ونډه واخلي. مدرسـې، ښـوونځي، پوهنتونونـه او رسـنۍ باید د دې موضـوع اهمیت روښانه کړي.

چاپېریال زموږ ګډ کور دی، که یې وسـاتو، موږ به یې د روغتیا، پاکې هوا او سـوکاله ژوند ثمره واخلو، خو که یې خراب کړو، نه یوازې موږ، بلکې راتلونکی نسـل به هم زموږ د بې مسـئولیته چلند سـزا ووینې. هر فرد، هر کور او هره اداره باید د چاپېریال سـاتنې لپاره عملي ګامونه واخلـي. راځئ، چې دا نړۍ د ځان او راتلونکو نسـلونو لپاره پاکه، زرغونه او د ژوند وړ وساتو.

# د مورنۍ ژبې ارزښت

حکیمي

په هره ټوله کې چې یو ماشوم نړۍ ته سـترګې پرانیـزي، له کوچنیوالي له خپلې مور، پلار او یا له خپلو نږدې کسانو څخه ژبه زده کوي. پـه مورنۍ ژبه زده کړې د هیـواد د هر وګړي حق دی، چـې زموږ په هیواد کې دې برخې ته پام شوی دی . نړۍ ورځ تر بلې د پرمختګ په حـال ده ، د پخـوا په پرتله اوس د خلکـو اړیکې پراخې شـوې دي، چـې د دې لپاره پر خپلـې مورنۍ ژبـې سر بېره د بلې یا نورو ژبو د زده کړې هم اړتیـاده ، د بیلګې په توګه ، یو سـړی که په خپله مورنۍ ژبه پوهیـږي یو سـړی دی او که دویمـه ژبه یـې زده وي مانا دا، چې د دوو کسانو کار کولی شي. په هرصورت لومړی خو لازمه ده چې هر څوک باید کوشش وکړي ،چې د هیواد رسـمي او مروجـې ژبې زده کـړي ، خو نوښـت، همکاري او اړیکې د اوسني وخت د خلکو اړتیاوې دي. ژبـه د دغو ټولو مهارتونو په لوبولو کې مهمه ونډه لري.د نړۍ سـوداګري او کلتور هم له پخـوا ډېـر له یـو بل سره تړلی دی. انټرنېټ او معلوماتي ټکنالوژۍ د خلکـو په فردي او ټولنیـز ژوند کې مهم بدلون راوسـتلی دی، په دې اسـاس د نویو ژبـو زده کړه د اوسـنۍ نړۍ د انسـانانو په مهم مهارت بدلېږي.د نویو وسایلو پر مټ پرمختللې څېړنې موږ ته د ژبې په هکله نوې دریځې پرانیزي. د پوهنتونونـو مختلفو څېړنو ښوولې ،چې د نوې ژبې زده کړه ډېرې ګټې لري. کله چې په نوې ژبه یوه نـوې پرېکړه کوو، دا د دې لامل ګرځي چې په هغې ژبه کـې منطقي فکر وکړو او احساسـاتي پرېکړه و نه کړو. څېړنه ښـیي،چې د نـوې ژبې کارونه د پرېکـړې په وخت کې د تعصـب اندازه حداقل ته را کموي، یا په بله وینا کله چې په بله ژبه کې شـمیرې ښکته او پورته کړو، ډېر کم پېښېږي ،چې په احساساتي لومه او اړخ نیولو کې ښکېل شو ، یا ناسمه پرېکړه وکړو.په دې اساس په بله ژبـه پرېکړه کول د مورنۍ ژبې په پرتله د احساسي پرېکړو کچـه ټیټوي. لـه دې ور اخوا په بله ژبه مطالعه کول نوښت ډېـروي ،چې دا خپله په ښـه پرېکړه کې مهـم رول لوبوي. ډېر وخت له یو داسې کس سره مخ کېږو ،چې کلتور او ژبه یې متفاوتـه وي او زړه کې ارمان کوو چې کاش د هغه کس ژبه مو زده وای، چې ور سره مو لا پخه اړیکه پاللـې او د هغه له کلتور څخـه مو ځان ډېر خبر کړي وای.نورو ته د خپلې ژبې د ویونو او عبارتونو ورښـودل د دې لامل ګرځي ،چې هغوی زموږ ملي ارزښـتونه اوکلتور ښـه درک او وپیژني.هېڅوک وخت نه لري ،چې د نړۍ ټولې ژبـې زده کړي. کـه غواړو یو کس یا یو کلتـور ډېر وپیژنو، له شـک پرته د هغـه کس یا کلتور ژبه د دوی د پیژندلو ښه وسـیله ده.ډېرې څېړنې ښیي، چـې د هغـو زده کړیالانـو د تحلیل مهارتونه پرمختګ کوي ،چې یوه نوې ژبه زده کوي.پر دې سربېره نـوې ژبه د اورېدو مهارتونـو ته هـم وده ورکوي او په پایله کې په ټولګي کې د ښې زده کړې لامل ګرځي.له بل کلتور سره مخامختیا موږ ته د خپل کلتور په هکله ژور درک را کوي، په یوه بله ژبه پوهېدل په دوو لارو موږ ته خپل کلتور لا ښه را پیژني؛ یو د هغو کتابونو لوستل ،چې د هغې ژبې د کلتور په اړه لیکل شوي .بېلابېلې ژبې له یو بل سره په اړیکه کې دي، یو بل ته ویونه پور ورکوي او د ژبې پر جوړښـت هم اغیزه کوي.د نوې ژبـې په زده کړې سره موږ د خپلې ژبې په هکله مهم ټکـي او معلومات هم زده کوو.د نوې ژبې زدکړه له موږ سره دا مرسـته هم کوي چې د کلتوري توپیرونـو په ګټه پوه او له قومي تعصب سره مبارزه وکړو.نړیوال لیکوال «نېلسن منډېلا» ویـلي: که لـه یو چا سره په داسـې ژبه خبرې وشي ،چې هغه یـوازې مفهوم ترې واخلي، ستاسـو خبره به د هغه مغز تـه ولوېږي، خـو که له هغـه سره په مورنۍ ژبه خبرې وشي، ستاسـو خبرې به د هغه زړه ته ولویـږي.د مورنۍ ژبې ارزښـت په دې کې نغښتی دی چې ماشومان کولی شي په ډېره اسـانۍ سره خپـل عواطف ، غوښتنې او احساسات تر نورو ورسـوي.بله ګټه یې دا ده چې زده کړه ورته اسانه وي او پرته له کومې سـتونزې کولی شي د ژورو معلوماتـو مفاهیمو ته ننوځي،خو اوس په افغانستان کـې ځوانـان ورځ تـر بلـې نـورې ژبې په ځانګـړې توګه د انګلیـسي او جرمني ژبې په ګډون نړیوالو...

۳مخ

# گـــزارش کیست هیـــداتید ثـدیه

## رنځوروال دوکتور معروفه هایل ترینر متخصص جراحی عمومی شفاخانه رابعه بلخی

شـفاخانه رابعه بلخی که روزانه صدها مریض از ولایت های مختلف کشـورغرض تداوی به این شفاخانه مراجعه می نمایند ،چندی پیش یک خانم ۳۵ سـاله از ولایت لوگر به لوحه Left Breast Lump در سرویس جراحی شفاخانه رابعـه بلخی داخل بسـتر گرفته شـد که بعـد از تکمیل معاینات نزدش Left Breast Hydatid Cyst تشـخیص شد. کتله مذکـور در ابتدا کوچک بوده و بـه مرور زمان در مدت شـش ماه بزرگ گردیده که در حـدود ۱۰X۱۰ cm قابل جس بود' اما کتله دردناک نبود و قوام Cystic داشت. مریضه آماده برای عملیات گردید.

مریضه جهت عملیات بالای میز انتقال داده شـد و بعد از اجرای Prep و Drap بالای کتله شق اجراء گردید. در ابتدا به اندازه ۱۰ cc الکول ۹۶٪ داخل جوف تطبیق شـد و بعد از ده دقیقه انتظار کیست با طبقه داخلی به صورت مکمل کشـیده شد. هیموستاز کنترول شـد و جلد ناحیه ترمیم و پانسمان اجراء شد و مریضه بعد از ۲۴ ساعت از شفاخانه رخصت گردید.

همچنان بـرای مریضه بـرای چهار هفتـه Albendazole توصیه گردید.

Breast hydatid Cyst

مرض هیداتید ثدیه نادر است و تقریباً ۰,۲۷٪ تمام واقعات هیداتید را تشکیل میدهد. ثدیه ممکن محل ابتدایی مرض باشـد' مریض عموماً از پیدا شدن کتله بدون درد در ثدیه شاکی میباشـد که کتله مذکور به صورت تدریجی بزرگ شده، اما عقدات لمفاوی موضعی بزرگ نمی شوند.

ایـن مـرض خانم های در سـنین ۳۰ - ۵۰ سـاله را مأوف میسازد. مرض اکثراً منظره Fibro Adenoma و Phylloides Tumour و آبسـه مزمـن و حتـی منظره کانسـر را تمثیل میکند. از این سـبب کیست هیداتید ثدیه در تمام خانم ها مخصوصاً در نواحی Endemic در نظر باشد.

تشخیص:

قبل از عملیات توسـط FNAC صورت میگیرد که در آن Hook lets ' Scoleces و Laminated Membrane دریافت میشـود. همچنان توسط Radiology و Serology تشخیص میشـود. Mammography یک کتلـه Circumscribed را نشان میدهد که متصف با ساختمان Ring shaped در داخل کتله است.

التراسوند و MRI از جمله وسایل تشخیصیه میباشند.

Gharbi's classification based on ultrasound

- ***Simple fluid collection – 1 Type***
- ***Floating membrane (Water lily/ – 2 Type (water snake sign***
- ***Multilocolated (Honey – 3 Type (combing***
- ***Multilocated + Heterogenous – 4 Type nodules***
- ***Calcified cyst – 5 Type***

تداوی: تداوی کیست هیداتید ثدیه عبارت از کشیدن کتله به صورت مکمل اسـت' با وجود آنکه نکس آن نیز دیده شده است.

هیواد

# افغان اعلانات

## اطلاعیه لیلام

قرار است وزارت امور خارجه به تعداد (۳۱۲۰) سه هزار و یک صدو بیست شماره اموال داغمه مختلف النوع خویش را به تاریخ ۱۴۰۳/۱۲/۱۲ با حضور داشت هیت موظف به پروسه داوطلبی گذاشته و بفروش رساند.

| اسم پروژه | تاریخ داوطلبی | زمان داوطلبی | مکان | تضمین داوطلبی |
|---|---|---|---|---|
| لیلام واگذاری اجناس داغمه | ۱۴۰۳/۱۲/۱۲ | ۱۰:۰۰ قبل از ظهر | وزارت امور خارجه شماره ارتباطی ۰۲۰۲۱۰۳۶۶۷ | ۱۵٪ قبل از شروع داوطلبی نقدا اخذ می گردد |

۹۴۴۵

### دعوت به داوطلبی

نام پروژه :{٦/٤,٠ کیلولت فامیلی نجم الجهاد فارم هده ساحه مقام خان و قریه آخندزاده ولایت ننگرهار }می باشد. د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی٦/٤,٠ کیلولت فامیلی نجم الجهاد فارم هده ساحه مقام خان و قریه آخندزاده ولایت ننگرهار } دارای کود نمبر ساختمان-١٤٤٦-داوطلبی بازملی ٠٢٠ اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های ساختمان بدست آورده ،ویا از سایت dabs.af به طور انلاین به دست اورده آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر روز دوشنبه تاریخ٢٧/ حوت/١٤٠٣ به ریاست تهیه و تدارکات دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمیباشد.

١-تضمین آفر: مبلغ١٠٢٩٧٠٠یک میلیون بیست و نو هزار و هفت صد افغانی میباشد.

٢-جلسه قبل از افرگشایی:روز سه شنبه ساعت١٠:٠٠قبل ازظهر مورخ/٢١/ حوت/١٤٠٣/برگزار میگردد.

٣-آفر گشایی: جلسه آفر گشایی دوشنبه ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهرمورخ٢٧/ حوت/١٤٠٣ برگزار میگردد.

٤-آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تهیه و تدارکات.

٥- آدرس اداره : د افغاستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ٠٢٠٢٥١٣٦٧٧

آدرس الکترونیکی :.Nazirullah hashimi@dabs.af

abdullah.afghanzoy@dabs.af

### دعوت به داوطلبی

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی تطبیق پروژه اصلاحی ٦ کیلولت به ٢٠ کیلولت ولسوالی چهاردره ولایت کندز دارای کود نمبر برشنا شرکت/١٤٤٥/داوطلبی باز ملی/ساختمان/٠١٩ اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های ساختمان بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر روز شنبه تاریخ ٠٣/ حمل/١٤٠٤ به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پزیرش نمیباشد.

١- تضمین آفر : مبلغ ٦١٠,٠٠٠ ششصد و ده هزار افغانی میباشد.

٢- جلسه قبل از داوطلبی : مورخ ٢٠/ حوت/١٤٠٣ به روز دو شنبه ریاست تدارکات,منزل ششم برگزار میگردد.

٣- آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز سه شنبه ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر مورخ ٠٣/ حمل/١٤٠٤ برگزار میگردد.

٤-آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

٥-آدرس اداره : د افغاستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ٠٢٠٢٥١٣٦٧٧- ٠٧٢٩٠٠٣٧٣٧

آدرس الکترونیکی : /.Akbar kamandi@dabs.af abdullah. afghanzoy@dabs.af

### دعوت به داوطلبی

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی تطبیق پروژه اصلاحی ٦ کیلولت به ٢٠ کیلولت ولسوالی چهاردره ولایت کندز دارای کود نمبر برشنا شرکت/١٤٤٥/داوطلبی باز ملی/ساختمان/٠١٩ اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های ساختمان بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر روز شنبه تاریخ ٠٣/ حمل/١٤٠٤ به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پزیرش نمیباشد.

١- تضمین آفر : مبلغ ٦١٠,٠٠٠ ششصد و ده هزار افغانی میباشد.

٢- جلسه قبل از داوطلبی : مورخ ٢٠/ حوت/١٤٠٣ به روز دو شنبه ریاست تدارکات,منزل ششم برگزار میگردد.

٣- آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز سه شنبه ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر مورخ ٠٣/ حمل/١٤٠٤ برگزار میگردد.

٤-آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

٥-آدرس اداره : د افغاستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ٠٢٠٢٥١٣٦٧٧- ٠٧٢٩٠٠٣٧٣٧

آدرس الکترونیکی : /.Akbar kamandi@dabs.af abdullah. afghanzoy@dabs.af

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۶۲۱۶-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای رومان فرزند شاپور بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۴۳۱

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم حسیب الله اکبری فرزند محمد اکبر ولدیت محمود خان دارنده تذکره نمبر ( ۱۶۵۸۶- ۰۹۰۰- ۱۳۹۹) مسکونه اصلی ولایت بغلان مالک امتیاز دواخانه اکبری واقع ولسوالی خوست فرنگ ولایت بغلان عنوانی معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم عبدالخلیل فرزند عبدالرحیم ولدیت غلام علی دارنده تذکره شماره (۷۹۹۹۷۴ ) مسکونه اصلی ولایت بغلان گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۴۵۸

### اطلاعیه مزایده جایداد

طبق هدایت محکمه ذیصلاح قرار است یک دربند حویلی به مساحت ۲۰۰ متر مربع واقع ناحیه دهم قلعه موسی شهر کابل ملکیت اسامی وحید الله فرزند حفیظ الله ولدیت سیف الله بفروش برسد.

افراد حقیقی و حقوقی که خواهان خریداری جایداد فوق باشند در مدت ده روز درخواستی های خویش را رسما به ریاست حقوق ولایت کابل واقع فروشگاه تسلیم نموده و شرطنامه را اخذ نمایند.۹۴۴۴

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی تذکره تابعیت به اسم مبارک شاه فرزند عبدالطیف مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۳۷

### اطلاعیه مفقودی

یک طغرا مهر دفتر رهنمای معاملات ( ام البلاد ) به اسم محترم غلام سخی فرزند محمد حسن ولدیت غلام حسین صادره سال ۱۴۰۲/۱/۱۳ مفقود گردیده و فاقد اعتبار می باشد.۹۴۷۴

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۸۷۵۷۸- ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای مشرف فرزند دل اقا بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۸۴۶۰

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد جواز سیر دارای پیلت نمبر ۳۹۳۳۹۹-۵ به اسم عبدالرحمن فرزند حاجی داد گل ولدیت مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۴۳

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه مکتوب گمرکی موتر سایکل به اسم مصطفی فرزند فیض الله مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۴۹

### خبرتیا

ملی پراختیا شرکت په پام لري چې د بګرامیو ښاګوټی د لومړی فاز او د لاله ښارګوټی د ۱۴۰۴ لمریز کال پر لومړۍ او دویمه ربع کې افتتاح او پیرودونکو ته توزیع کړي ، نو د دې لپاره ټولو هغو قدرمنو پیرودونکو ته ، چې د ملی پر اختیا شرکت اړوند لاله او بګرامیو ښارګوټو کې یې آپارتمانونه اختیستي او تراوسه یې خپل پاتې قسطونه نه دي تحویل کړي ، خبر ورکول کیږي ، چې د دې خبرتیا تر نشر وروسته ژر تر ژره د خپلو پاتې قسطونو د تحویلی په موخه د روان کال ۱۴۰۳ لمریز کال د کب یا حوت میاشتې تر دیر شمې نیټې پورې د کابل ښار په قصبې سیمه کې د ملی پراختیا شرکت د خرڅلاو څانګې ته مراجعه وکړي. که تر ټاکلی نیټې پورې د پیرودوونکو له لورې پاتې قسطونه تحویل نه شي ، نو د خرڅلاو د طرزالعمل له مخې به آپارتمانونه مسترد او نویو پیرودونکو ته وویشل شي ، بیا به د شکایت حق و نه لري.۹۴۴۲

### اعلان داوطلبی

جمعیت هلال احمرافغانی در پروسه داوطلبی بکرایه گیری موترها به خاطر تیم سیار صحی مربوط ریاست خدمات صحی در هفت ولایت کشور، که هر شرکت میتواند شرطنامه و آفر پروژه های مورد نظر خویش را اخذ نماید:

۱.۱ ۵ (پنج ) عراده در ولایت ننگرهار

۱.۲ ۱ (یک ) عراده در ولایت ننگرهار

۱.۳ ۳ (سه ) عراده در ولایت کنر

۱.٤ ۱ (یک ) عراده در ولایت کنر

۱.۵ ۱ (یک ) عراده در ولایت نورستان

۱.٦ ۱ (یک ) عراده در ولایت هلمند

۱.۷ ۱ (یک ) عراده در ولایت کنهار

۱.۸ ۱ (یک ) عراده در ولایت خوست

۱.۹ ۳ (سه ) عراده در ولایت پکتیکا

۱.۱۰ ۲ (دو ) عراده در ولایت پکتیکا

۱.۱۱ ۱ (یک ) عراده در ولایت پکتیکا

به مدت ( ٤ ماه – ۳ ماه و ۹ ماه) که مشخصات آن درج آفر میباشد، به داوطلبی میسپارد. شرکت های تجارتی ، لوژستیکی و ترانسپورتی که در قسمت فعالیت داشته باشند،درخواست های خویش را به آمریت تهیه ، تدارکات و قرار داد ها جمعیت هلال احمر افغانی واقع افشار سیلو بسپارند، خودشان بعد از نشر اعلان الی مدت (۷) یوم به مجلس داوطلبی مراجعه نموده و پول حق الاشتراک مبلغ (۱۰۰۰) افغانی نقدا آخذ میگردد.۹۴۷۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله عرفی جایداد واقع ناحیه ۱۳ به اسم عوض علی فرزند خادم حسین ولدیت قلندر که در رهنمای معاملات برادران کجابی عقد گردیده بود ، مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۴۵۰

---

### د مورنۍ...

ژبو زدهکولو ته زیات زړه ښه کوي، په داسې حال کې چې د خپلو ملي ژبو ساتنې ته پام نه کوي، نظر دادی، چې په کال کې یوه ورځ د مورنۍ ژبې په نامه ده. دا موږ ځوانان هڅوي چې خپلې مورنۍ ژبې او فرهنګ ته هم پام وکړو.د دې ورځې یادول اړین دي، هر هېواد کې باید ملي ژبو ته درنښت وشي، وینو چې زدهکوونکي بهرنیو ژبو ته زیاته لېوالتیا لري او له درنو کورنیو څخه هم دا غوښتنه ده، چې لومړي مو باید ماشومان دري او پښتو ژبې زدهکړي او د دې ترڅنګ نورې ژبې هم زده کړي .سربېره پر دې مورنۍ ژبه یوازې د ماشومانو لپاره نه ، بلکې د یو ملت لپاره هم زیات ارزښت لري، ځکه ډېر فرهنګي میراثونه موږ هغه وخت پېژندلي شو، چې اصلي ژبه یې ژوندۍ وي.د پښتو ژبې وتلی شاعر خوشحال خان خټک د مورنۍ ژبې په اړه ویلي:

فارسي شعر مې هم زده سلیقه لرم د دواړو پښتو شعر مې خوښ کړو هر څوک خپل ګنې ښاغلیپه کال کې یوه ورځ ځکه د مورنۍ ژبې د نړیوالې ورځې په نامه نومول شوې، چې خلک د خپلې مورنۍ ژبې پر ارزښت وپوهېږي، په اړه یې ډېرې څېړنې وکړي او خلکو سره خپلې مورنۍ ژبې ته د کار کولو انګېزه شتون ولري.د یادولو وړ ده ، چې په ۱۹۹۹ کال کې د فبرورۍ ۲۱مه د مورنۍ ژبې د نړیوالې ورځې په توګه د یونسکو له خوا ونومول شوه او دا ورځ هر کال د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په بېلابېلو بڼو لمانځل کېږي.

### افغانستان د حکومت...

د هېوادوالو هوساینه او رضایت زموږ یوازینۍ هیله ده او تاسې هر مسئول کس باید کوښښ وکړئ، ترڅو د هېوادوالو ستونزو ته په وخت او ښه ډول رسېدنه وکړی.د ریاست الوزراء د اقتصادي مرستیال په خبره، افغانستان هغه وخت پر پښو دربدلي شي، چې حکومت د ملت خدمت وکړي او ملت له حکومت سره اوږه په اوږه په ټولو چارو کې همکار واوسي.په تاشکند کې د افغانستان سفارت مسئولینو د سفارت دفعالیتونو په اړه د ریاستالوزراء اقتصادي مرستیال ته معلومات وړاندې کړل او ویې ویل، چې د اسلامي امارت په راتګ سره په ازبیکستان کې د مېشتو افغان کډوالو او کارکوونکو ستونزې تر ډېره حده حل شوې دي.د یادونې وړ ده، چې په تاشکند کې د افغانستان سفارت د نوې ودانۍ چارې بشپړې شوي او په نږدې راتلونکي کې به ګټې اخیستنې ته وسپارل شي.

### د ریاست الوزراء...

ملا عبدالغني برادر اخوند زیاته کړه: د ۵۰۰ کیلوولټو برښنا مزي غځولو پروژه چې پخوا یې قرارداد په ۲۵۲ میلیونو ډالرو شوي و، له بحثونو وروسته ازبیکستان دا قرارداد ۲۲۲ میلیونو ډالرو ته راټیټ کړ.همداراز یې د وسپنې پټلۍ په برخه کې وویل، چې ډېر ژر به د ازبیکستان د وسپنې پټلۍ تخنیکي ټیمونه افغانستان ته راشي او له حیرتان څخه به تر هرات پورې د وسپنې پټلۍ د غځولو لومړني مطالعات پیل او له مطالعاتو وروسته به د ریل پټلۍ عملي چارې پیل کړي،چې دمطالعاتو لګښت یې ازبیکستان ورکوي.نوموړي دا هم وویل ،چې ازبیکستان به د افغانستان د کرنیزو محصولاتو د صادراتو په برخه کې شته محدودیتونه لرې کړي. له دې سره به ازبیکستان ته د افغانستان د کرنیزو محصولاتو په صادراتو کې زیاتوالي راشي.د ریاستالوزراء اقتصادي مرستیال له ازبیکستان څخه د واردېدونکې برښنا په اړه وویل: دوی له ازبیکستان سره هوکړې ته رسېدلي، چې په راتلونکي کال کې به د دغې برښنا کچه زیاته او تعرفه به یې کمه شي.

### لغمان کې سلګونو...

ولسوالۍ اړوند د کهنه پال درې په لرې پرته سیمه کې فعال شوي، چې له مخې یې ۹۴۳ کورنیو ته روغتیایي خدمات وړاندې کېږي.یاد مرکز د ((سرف افغانستان)) موسسې له لوري تمویلېږي او پکې ۱۴ تنه نارینه او ښځینه ډاکټران د مور او ماشوم ساتنې، واکسین، OPD، لابراتوار او یو شمېر نورو برخو کې فعالیت لري.د یادونې وړ ده، چې قندلي کلي د الیشنګ ولسوالۍ اړوند د کهنه پال درې په غرنیزه سیمه کې موقعیت لري، چې د ولایت له مرکز مهترلام څخه شاوخوا ۱۰۰ کیلومتره فاصله لري.

### سمنګانو کې...

وغوښتل، چې د یو نیالګي په کېنولو سره د ښه راتلونکي او سالم چاپېریال په جوړولو کې ونډه واخلي.په ورته وخت کې، د یاد ولایت د چاپېریال ساتنې رئیس ملا عین الدین فاروقي وویل، چې د چاپېریال پاکوالي او د هېواد سمسورتیا د هر وګړي مسئولیت دی.ده ټینګار وکړ، چې د ایبکو ښار اوسېدونکي باید د خپلو کورونو او کوڅو مخې ته نیالګي کېنوي او ساتنه یې وکړي.د یادونې وړ ده، چې دا کمپاین د ښاروالۍ، چاپېریال ساتنې ریاست او همکارو موسسو په همکارۍ پیل شوي، چې د ولایت د سمسورتیا او چاپېریال ساتنې لپاره یو مهم ګام بلل کېږي.

### ناروې له افغانستان...

کړې، چې موږ له افغانستان سره د اقلیمي بدلون او د کوکنارو دکښت بزګرانو ته د بدیلو پروژو ، له بې وزلو سره د بشري مرستو او نورو بېلابېلو برخو کې خپلو هڅو او مرستو ته دوام ورکوو.نوموړي د ښې حکومتولۍ، اقتصادي پروژو، امنیت او نورو برخو کې د اسلامي امارت د هڅو ستاینه کړې او د لا پرمختګ او بهتره کېدو هیله یې ښودلې.په دې ناسته کې د یو شمېر نورو ګډو موضوعاتو په اړه هم خبرې او د نظرونو تبادله شوې.

### په سلواغې میاشت...

او شاوخوا ۱۴۶ له ترکیې څخه راستانه شوي دي.له تېرو درېوو کلونو راهیسې په ګاونډیو هېوادونو کې د افغان کډوالو د نیولو او بېرته راالېږلو لړۍ چټکه شوې ،چې ایران او پاکستان له افغان کډوالو سره دناوړه چلند کوونکو هېوادونو د لیست په سر کې حسابېږي. بله خوا ایراني او پاکستاني حکومتونو بار بار ټینګار کړی، چې دوی به نور په خپله خاوره کې هېڅ «غیرقانوني» کډوال ته د استوګنې اجازه ور نکړي او په نږدې درېوو کلونو کې یې سلګونه زره کډوال راالېږلي دي. د ویلو وړ ده چې په ترکیه او جرمني کې هم د افغان کډوالو نیول زیات شوي او تازه په تایلنډ هېواد کې هم د نهو افغان کډوالو د نیولکېدو خبر ورکړ شوی دی.

### دافغانستان بانک...

سکتور په برخه کې رغنده اړیکې ولري او په دې وسیله د افغانستان د بانکي سکتور په برخه کې په ملي او نړیواله کچه اړینې اسانتیاوې رامنځته کړي.د ازبیکستان د مرکزي بانک رئیس تیمور اشمتوف هم له خپله اړخه د پوره همکارۍ ډاډ ورکړ.نوموړي د دواړو هېوادونو تر منځ د سوداګرۍ د پراختیا په برخه کې د بانکي سکتور رول د خورا ارزښت وړ یاد کړ او په دې برخه کې یې دوه اړخیزه همکاري مهمه وبلله.د یادولو وړ ده، چې ازبیکستان ته د افغانستان اسلامي امارت د لوړ پوړي پلاوي د سفر موخه د افغانستان او ازبیکستان ترمنځ د سیاسي، اقتصادي، سوداګریزو او ترانزیتي اړیکو پراختیا او په افغانستان کې په بېلابېلو سکتورونو کې د ازبیکستاني بانګوالو د پانګونې جذب دي.

### کابل کې د لسګونو...

مسلکي بستونه د ازادۍ سیالۍ له لارې اعلان او د ازموینې په نتیجه کې مسلکي او وړ اشخاص استخدام کړي.بل لور ته د اداري اصلاحاتو او ملکي خدماتو رییس مولوي محمد طاوس طارق وویل، چې نوموړې اداره د هېوادوالو په خدمت کې ده.هغه وویل، چې په یاده ازموینه کې به وړ کدرونه نوموړو بستونو ته ور وپېژندل شي.ښاغلي طارق په ټولو امارتي ادارو غږ وکړ چې خالي بستونه د اصلاحاتو او ملکي خدماتو ادارې له لوري اعلان کړي تر څو غوره کدرونه استخدام شي.همداشان یو تن کډونوال انعام الله وایي، ډېر خوښ یم چې د ازادۍ سیالۍ له لارې الکترونیکي ازموینه کې ګډون کوم. سمیع الله مومند

### بېګم او جوانان...

د اسلامي امارت له نشراتي تګلارو، اسلامي ارزښتونو او ملي ګټو د افغاني کلتور په رڼا کې ملاتړ کوي.

### د کابل او تاشکند...

اسلامي امارت د نشهیي توکو د کر، تولید، کارولو او قاچاق پر ضد جدي مبارزه کړې ده او ګاونډیو هېوادونو ته یې د هغو د قاچاق مخنیوي کړی دی.اسلامي امارت ګاونډیو، د سیمې او نړۍ هېوادونو ته ډاډ ورکوي، چې د افغانستان خاوره به د هېڅ هېواد پر ضد ونه کارول شي او له دغه هېواد څخه دوی ته کوم تهدید نشته.د ریاستالوزراء اقتصادي مرستیال د افغانستان او ازبیکستان ترمنځ د وسپنې پټلۍ او سړکونو پراختیا یوه مهمه او اساسي موضوع وبلله او د ازبیکستاني لوري ته یې بلنه ورکړه، څو د مزارشریف-هرات او له هغه ځای څخه کندهار ته د وسپنې پټلۍ پروژه کې چې ازبیکستان له ایران او چین سره نښلوي، پانګونه وکړي.د ښاغلي برادر اخوند په وینا؛ په دې سره به د جنوبي اسیا هېوادونو، ایران او چین سره د تاشکند سوداګري پراخه شي او دا به د سیمې په ثبات او پرمختګ کې رغنده رول ولوبوي.همداراز ملا عبدالغني برادر اخوند د سالنګ لویې لارې د دویم تونل جوړولو په برخه کې هم تاشکند ته د پانګونې بلنه ورکړه. نوموړي ویلي، د دې تونل له لارې مرکزي اسیا له جنوبي اسیا سره نښلول کېږي او د سیمې په ترانزیټ کې اساسي رول لري.په پای کې د ریاستالوزراء اقتصادي مرستیال ازبیک لوري ته ډاډ ورکړی، چې اسلامي امارت له ازبیکستان سره ټولو امنیتي، اقتصادي او کلتوري اړیکو ته ژمن او د دواړو هېوادونو ترمنځ د ښو اړیکو د پراختیا غوښتونکي دي.ملا عبدالغني برادر اخوند د دواړو لورو ترمنځ په بېلابېلو برخو کې د شویو هوکړو پر عملي کولو او همدا راز د کابل او تاشکند ترمنځ د بنسټیزو پروژو، سوداګرۍ، ترانزیټ، سیمه ییزو مسایلو او اقتصادي اړیکو د پراختیا په اړه پر ګډ کار کولو ټینګار کړي.ورپسې د ازبیکستان لومړي وزیر عبدالله عارف اوف له افغانستان سره د اقتصادي اړیکو پر پراخوالي ټینګار کړي او ویلي یې دي، ازبیکستان د تاشکند او کابل ترمنځ د اقتصادي اړیکو او سوداګرۍ د پراختیا په موخه له ټولو شریکو شویو طرحو ملاتړ کوي او د عملي کېدو لپاره به یې د دواړو لورو تخنیکي ټیمونه خپل کار ته دوام ورکړي.

### سرپل کې د اوبو رسولو...

شوې، چې د سیمې ۱۵۰۰ کورنیو ته د څښاک اوبه برابروي.

د هغه په وینا، دا شبکه هر کور ته د نلکي له لارې د لمریزي برښنا په واسطه اوبه رسوي.د یادې سیمې دیني عالم مولوي محمودالحسن د دې پروژې له بشپړېدو خوښي وښوده او ویې ویل چې دا د سیمې د خلکو یوه پخوانۍ هیله وه، چې اوس پوره شوه.

نوموړي زیاته کړه، چې د سیمې خلک له ګنو ستونزو سره مخ وو او د څښاک د پاکو اوبو نشتوالي یې یوه له مهمو ستونزو څخه وه، چې اوس لرې شوې ده.همدارنګه، د عرببابي کلي یو اوسېدونکي میرویس وویل چې له لرې سیمو د اوبو راوړل، په ځانګړې توګه د اوړي او ژمي په سختو شرایطو کې، ډېر ستونزمن و.باید وویل شي، چې د سرپل د کلیو د پراختیا ریاست په وینا، اوس هم د دې ولایت ۸۰ سلنه خلک پاکو اوبو ته لاسرسی نه لري.

### د افغان کډوالو...

د قانوني ستونزو د مخنیوي» لپاره پلې شوې وه او دا د ایران د دولت له لوري کومه حقوقي ژمنه نه وه. نوموړي زیاتوي، د راتلونکي کال لپاره داسې پلانونه جوړ شوي چې یوازې د یو واحد سند له مخې به افغان وګړي هلته پاتې کېږي او پاتې کسان به دا اجازه ونه لري. په همدې حال کې نوموړي خبرداري ورکړي، هغه افغان کډوال چې قانوني اسناد نه لري او خپل شتون د ټاکل شویو مرکزونو سره ثبت نه کړي؛ نو د ایران د امنیتي ځواکونو لهخوا به ونیول شي.

### د برښنایي پېژندپاڼو...

کې د وېشل شویو پېژندپاڼو له ټولو ډېرې په کابل ولایت کې ۵۸ زره او ۵۴۰، کندهار کې ۲۲ زره او ۸۳۹، هرات کې ۲۲ زره او ۱۱۵، بلخ کې ۱۴ زره او ۳۹۵ او هلمند ولایت کې ۱۲ زره او ۶۸۳ برښنایي پېژندپاڼې وېشل شوي دي.له بل لوري په یاده میاشت کې د ټول هېواد په کچه څهباندې لس زره او ۵۰۰ نورو کسانو ته دبرښنایي پېژندپاڼو له وېش وروسته خدمتونه هم وړاندې شوي دي.د احصایې او معلوماتو ملي اداره ژمنه ده، چې ټولو هېوادوالو ته پر وخت او متوازن خدمتونه وړاندې کړي، په همدې بنسټ یې د برښنایي پېژندپاڼو د وېش لړۍ لرې پرتو سیمو او ولسوالیو ته غځولې، چې د یادو سیمو اوسېدونکي په اسانۍ سره کولی شي خپلې برښنایي پېژندپاڼې ترلاسه کړي.

### امریکا له اوکراین...

سرچینو او تیلو یا هر هغه څه غوښتنه وکړم چې موږ یې ترلاسه کولی شو.

### کابل کې د ۳ فرعي....

د پروژو او پروګرامونو د تنظیم ریاست انجنیران د دې پروژې له کیفیته د تضمین په موخه تخنیکي او فني څارنې کوي.

### هیواد کې د نیالګیو...

له مسئولینو وغوښتل چې د جمعې لمانځه خطبو کې د نیالګیو کېنولو د ارزښت په اړه خلکو ته پوهاوي ورکړي.نوموړي وویل: ((د حج او اوقافو له وزارت څخه غواړو چې له زدهکوونکو او زدهکړیالانو او هېوادوالو د جمعې خطبه کې وغواړي چې یو یو نیالګي کېنوي او د نیالګیو د اهمیت په اړه پوهاوي ورکړي.))

د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ وزارت مالي او اداري مرستیال ملا اغاجان اخند حاجي سالم هم له هېوادوالو وغوښتل، چې د نیالګیو په کېنولو او ساتنه کې له دغه وزارت سره همکاري وکړي.

ده وویل: ((موږ او تاسو ته لازمه ده چې نیالګیو کېنولو ته لومړیتوب ورکړو او ساتنه یې وکړو او دا راتلونکي نسل ته شتمني ده، راځئ چې ښې راتلونکې او چاپېریال ته کار وکړو.))

د کرنې او مالدارۍ د تولیداتو خونې مشر خانمحمد فروتن وایي، هرکال هېواد کې میلیونونه مثمر او غیرمثمر نیالګي کېنول کېږي، خو پر وخت د اوبو نه ورکولو او ورته د نه پام په دلیل بېرته له منځه ځي.ده له هېوادوالو وغوښتل چې د نیالګیو په روزنه او ساتنه کې ونډه واخلي. ((دا ونې مو چې کېنولې، ساتنې ته اړتیا لري. موږ باید یو نه،بلکې ۴۰ میلیونه نیالګي کېنوو او که ساتنه یې، نهوي، لهمنځه ځي. له خلکو غواړو چې نیالګیو ته اوبه ورکړي. ساتنه یې وکړئ او وړاندیز مې دا دي چې امارت او وزارتخونې داسې کمپاین وکړي چې نیالګیو ته اوبه ورکړي.))

د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت د شمېرو له مخې، د اسلامي امارت له واکمنېدو وروسته هېواد کې سل میلیونه نیالګي کېنول شوي دي.

Hewad Daily

دوشنبه د شعبان المعظم ۲۵مه ۱۴۴۶ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د کب ۶مه د 2025 م کال د فبروري 24مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

# د کابل او تاشکند تر منځ د دوه اړخیزو اړیکو پر پراختیا ټینګار وشو



د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر اخوند ازبیکستان ته د خپل سفر پر مهال د ازبیکستان له لومړي وزیر عبدالله عارف اوف سره لیدنه کړې.د دې لیدنې پر مهال د دواړو هېوادونو ترمنځ په بېلابېلو برخو کې د شویو هوکړه لیکونو پر عملي کولو خبرې کړې.د ریاست‌الوزراء اقتصادي مرستیال د خپلو خبرو پر مهال د اسلامي امارت بهرني سیاست ته په اشارې سره ویلي: د ګاونډیو، سیمې او نړۍ هېوادونو په اړه د اسلامي امارت سیاست بې‌طرفه او د نه مداخلې پر اصولو ولاړ دی او لـه دوی څخه هم همدې اصل تـه د ژمـن پاتـې کېدو غوښتنه لري.ملا عبدالغني برادر اخوند زیاته کړې: ...**۳مخ**

## اسرائیلو د فلسطیني بندیانو خوشې کول ځنډولي

د حـماس اسـلامي غورځنګ له لـوري د ۶ اسرائیلي بندیانو له خوشي کولو وروسـته اسرائیلو د ۶۲۰ فلسـطیني بندیانو ازادول ځنډولي.ټـاکل شـوه وه، چـې اسرائیل دا بندیان د شنبه په ورځ خوشي کړي.اسرائیلو ویلي، چې له ۶۰۰ د ډېرو فلسـطیني بندیانو خوشې کول یې تر نامعلوم وخته پورې ځنډولي.حماس غورځنګ په دې تړاو ویلي، چې د اسرائیلو له لوري د فلسـطیني بندیانو نه خوشې کول او یا ځنډول د اوربند له هوکړې ښکاره سرغړونه ده.یاد غورځنـګ ورمـه ورځ د غزې په خان یونس ښـار او النصیرات پنډغالي کې شپږ اسرائیلي بندیان ازاد او د سره صلیـب نړیوالـې کمېټې ته وسپارل.



## حماس: د بندیانو خوشې کولو کې ځنډ د اوربند له ترونه ښکاره سرغړونه ده



د حماس جهـادي غورځنګ د نتانیاهو وروسـتۍ پرېکړې ته په غبرګون ،چې د فلسطیني بندیانو خوشې کول یې ځنډولي ویلي، دا د اوربند د تړون د ګډوډولو هڅه او ښکاره سرغړونه ده.الجزیرې ټلویزیون د نتانیاهو د همدې پرېکړې په تړاو د حماس جهادي غورځنګ اعلامیه رااخیستې ،چې پکې راغلي، نېوا ګګر اسرائیلیان د فلسطیني بندیانو د خوشې کېدو ځنډول د اوربند له شوي تړون څخه تېښته او دا یې قصدي هڅه ده.د حماس له لوري په خپره شوې اعلامیه کې راغلي، هغه ادعاوې چې ګواکې حماس د بندیانو د تبادلې په وخت اسرائیلو ته سـپکاوی کوي ناسمې او له حقیقته لرې دی.حماس ویـلي، چې د دوی دا او دې ته ورته نورې ناسـمې ادعـاوې د تړون له ژمنو څخه د تېښتې لپاره کمزورې پلمې دي.ماس په منځګړو او نړیوالې ټولنې غږ کړی، چې په اشـغالګرو فشار راوړي ،چې د شوې هوکړې له مخې له ځنډ او خنډ پرته فلسطیني بندیان خوشې کړي.دا په داسې حال کې ده، چې غزه کې د شـوي اوربند د لومړي پړاو په اوږدو کې د بندیانو د اوومې تبادلې په موخه حماس د اسرائیلو ۶ بندیان سره صلیب ته وسپارل، خو د نتانیاهو دفتر د همدغو شپږو بندیانو د تبادلې په صورت کې د شاوخوا ۶۰۰ بندیانو خوشې کول د یو شمېر ناسمو ادعاوو له امله تر نامعلوم وخت پورې و ځنډول.

## د خصوصي تحصیلي بنسټونو د ستونزو د حل لپاره دوه اړخیزه کمېټه وټاکل شوه




د لوړو زده کړو وزارت وايي؛ شیخ نداء محمـد ندیم د لوړو زده کړو وزارت د ناسـتو په تالار کې، په داسې حال کې چې د دغه وزارت علمي مرستیال شیخ ضیاء الرحمن الاریـوبي او د مرکـزي ادارو یو شمېر رئیسانو هم شـتون درلود، د خصـوصي تحصیـلي نهادونو د استازو سـتونزې او وړاندیزونه واورېدل او د سـتونزو د حل ډاډ یې ورکړ.یاد وزارت زیاته کړې؛ د لوړو زده کړو وزیر په یاده ناسته کې د خصـوصي تحصیلي نهادونو اسـتازو ته ډاډ ورکـړ، چې دغه وزارت په هـر اړخیز ډول د یادو نهادونـو ملاتړ کـوي او د علمي څواکمنتیا په برخه کې به لازمې اسانتیاوې ورته برابروي.د یادونې وړ ده، چـې د ناسـتې په پای کې د خصـوصي تحصیـلي نهادونو د ستونزو د په نښه کولو او حل لپاره دوه اړخیزه کمېټه وټاکل شوه.

## د اوبو او انرژۍ وزیر د پکتیا د قومي مشرانو وړاندیزونه واورېدل

د اوبـو او انـرژۍ وزیـر مـلا عبداللطیف منصـور د ډنډ پټان، څمکنیو، جاني خېلو، لجه منګل، احمـد خېلـو، ځاځـي آریوب او مېرزکـې ولسـوالیو له قومي مشرانو سره لیدنـه کړې.په دې لیدنه کې د یادو ولسوالیو مشرانو د اوبو بند، برېښنا رسولو او اوبو رسـولو پروژې د وزارت رهبري مقام تـه وړاندیز کـړې.د اوبو او انـرژي وزیر ملا عبداللطیف منصـور دغـو مشرانو تـه ډاډ ورکړ، چې د شته امکاناتو په پام کې نیولو سره به د دغه وزارت له خوا د هغوی ستونزو ته رسېدنه وشي.دا په داسې حال کې ده، چې څه موده مخکې د اوبو او انرژۍ وزیـر د پکتیا له والي سره هم په راتلونکي کال کې پکتیا ولایت ته د اوبو د بندونو د دوو پروژو له پرانیسـتلو څخه خبر ورکړی و.




## سرپل کې د اوبو رسولو ستره شبکه جوړه شوه

د سرپل د سانچارک ولسوالۍ په عرب‌بایي کلي کې د اوبو رسـولو یوه سـتره شـبکه جوړه او ګټې اخیستنې ته وسـپارل شوه.د یادې پروژې د پرانیستې په مراسمو کې د سرپل د کلیو د بیا رغونې او پراختیا رییس ملا جمعه حقیار وویل چې د عرب‌بایي کلي اوسېدونکو پخوا د څښاک اوبه له ۳۰ کیلومتره لرې سـیمو څخه راوړلې خـو د یادې شبکې په جوړېدو سره دا ستونزه هواره شوې ده.
نوموړي زیاته کړه، چې دا شبکه د ۲۷ کیلـو متـره پـه اوږدوالي د یونیسف په مالي ملاتړ د ۲۵ میلیونه افغانیو په لګښت پلي... **۳مخ**

## ایران: د افغان کډوالو د ثبت سندونه نور نه تمدیدوو

د ایـران د کورنیـو چـارو وزارت سـلاکار او د بهرنیـو وګـړو او کډوالـو چـارو د مرکـز مشر نـادر یاراحمدي ویلي، چې د افغـان کډوالو د ثبت سـند یوازې د روان کال تر پایه پـورې اعتبار لري او نور بـه تمدید نه شي. نوموړي ویلي، چې د افغـان کډوالو د ثبت طرحه «د ناقانونه وګړو د پېژندلو او... **۳مخ**

## د برښنايي پېژندپاڼو د وېش لړۍ لرې پرتو سیمو ته غځول شوې



د احصایـې او معلوماتو مـلي اداره وايي؛ د روان ۱۴۰۳ کال په سلواغې میاشـت کې د ټول هېواد په کچه د برښـنايي پېژندپاڼو او اسان خدمت د ۷۵ وېـش خانګـو لـه لارې ۲۷۰ زره او ۶۵۰ هېوادوالـو ته برښـنايي پېژندپاڼې وېشـلې دي.د دې اداري د برښنايي پېژندپاڼو خدمتونو ریاست د معلوماتو له مخـې د روان کال په سلواغې میاشت... **۳مخ**

## لغمان کې ۲۹ نوې لرغونې او تاریخي سیمې ثبت شوې



د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د لرغون‌پېژندنې مسلکي پلاوي له خوا په لغمان ولایت کې ۲۹ لرغوني او تاریخي سـیمې ثبت شـوې دي.د لغـمان ولایـت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاسـت د ګرځندوي آمر محمد یعقوب ایوبي باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلی، چې دغه سیمې د ولایت د مرکـز مهـترلام پـه ګـډون الینـګار، الیشـنګ او قرغیو ولسوالیو کې کشف شوې دي.د نوموړي په وینا، له دغو سـیمو ۵ یې په مرکز مهـترلام، ۱۴ په الینـګار، ۵ په الیشـنګ او ۵ په قرغیو ولسـوالیو کې تثبیت شـوې دي.بایـد وویل شي چې په لرغونو سیمو کې غیرقانوني کیندنـې او د اثـارو لټـون د فرهنګـي میراثونـو د قانـون خلاف عمـل دي، او هیڅوک حق نه لري چې له قانون څخه سرغړونه وکړي.

## امریکا له اوکراین څخه د مرسته شویو ډالرو د بېرته ورکولو غوښتنه کوي



د امریکا ولسـمشر ډونالډ ټرمپ په تازه څرګندونـو کـې ویلي، چـې امریکا له اوکراین سره یوې هوکړې ته نږدې شوې، چې د اوکراین د جګړې د پای ته رسـولو د هڅـو د یوې برخې په توګه د دې هېواد له معـدني سرچینو څخه عواید ترلاسـه کړي. ده ویلي: امریکا ۳۵۰ میلیارده ډالره مرسته وکړه ،ځکه چې موږ یو احمق او بې کفایته ولسـمشر او حکومت درلود. اروپا اوکراین ته خپلې مرستې د پور په بڼه ورکړې، نو دوی خپلې پیسې بېرته ترلاسه کوي،خو موږ دا پیسې پرته له کومې تمې ورکـړې دي، نو موږ غـواړو چې د ټولو پیسو لپاره یو څه خو بېرته ترلاسه کړو. زه به هڅه وکړم، چې جګړه پای ته ورسوم او د دې وژنې مخه ونیسـم. نوموړي دغه راز زیاته کړې ،چې زه د همدې دلیل لپاره، غواړم د معدني... **۳مخ**

## کابل کې د ۳ فرعي سړکونو د جوړولو چارې بیا پیل شوې



د وزیر محمد اکبرخان سـیمې د ۱۳، ۱۴ او ۱۵ فرعي سـړکونو د جوړولو چارې چې، د هوا د سـوړوالي له امله ځنډېدلي وې؛ بیا پیل شـوې.د لسمې ناحیې رئیس مولوي نورالوهاب نوري وویل ،چې دا سړکونه په ټولیزه توګه ۱۱۶۰ متره اوږدوالي او له ۱۲ څخه تر ۱۳.۵ مترو پورې سـور لري ،چې په جوړېدو سره به یې د سـیمې اوسېدونکو ته یو شـمېر آسانتیاوې رامنځته او د ورځېرمه سـیمو په ترافیکي ګڼـه ګوڼه کې به د پام وړ کموالي راشي. نوموړي زیاته کړه ،چې د سړک جوړونې د دې پروژې چارې تر اوسه ۵۰ سلنه مخته تللې او د کابل ښاروالۍ... **۳مخ**